تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید


ابو العزیز حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغۃ نقشبند اللہ

محرر ومرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب


اولہ حصہ


ناشر

مدرسہ حذیقۃ الاحناف

## المبحث الأول : تقبيل المصحف :

د عكرمه بن أبي جهل سنن الدارمي را اخيستي جلد ۲ صفحه ۵۳۲ باندې چې معرب بيروتي چاپ جلد ۱۰ صفحه ۲۲۹ جوړيږي غير معرب بيروتي چاپ جلد ۲ صفحه ۵۳۲ده چې رقم د حديث دي : ۳۳۵۰:

**أخبرنا سليمان بن حرب حدثنا حماد بن زيد عن أيوب عن ابن أبي مليكة أن عكرمة بن أبي جهل كان يضع المصحف على وجهه ويقول كتاب ربي كتاب ربي .**

دا حديث حاكم في المستدرك على الصحيحين ذكر كړي جلد ۱۱ صفحه ۴۳۴ كې الفاظ يې دادى :

**كان عكرمة بن أبي جهل يأخذ المصحف فيضعه على وجهه و يبكى ويقول كلام ربي وكتاب ربي.**

دارنګې ابونعيم اصبهاني په معرفة الصحابة جلد ۱۵ صفحه ۳۱۳ كې ذكر كړې ده هغې كې دده حالات هم دي څه حالات په كې ذكر دي د مبايعت مسئله په كې ده چې فتح مكه كې دي وتښتيده جدي ته ورسيده اراده يې وه كشتي كې كيني بل خوا لاړ شي دده بي بي ايمان قبول كړو هغې پسې څوك وليږه چې راځه ام الحكيم بنت الحارث بن هشام نوميده ورته يې وويل چې ما ايمان راوړي دي تاته مې هم امان غوښتې ده بيا راغې ايمان يې راوړ ايمان يې قبول شو .

دارنګې بيهقي في شعب الايمان جلد ۵ صفحه ۲۴۳ كې ذكر كړي دي .

دارنګې عبدالله بن أحمد بن حنبل په السنة جلد ۱ صفحه ۱۷ كې هم ذكر كړي .

ابن كثير په البداية والنهاية جلد ۷ صفحه ۴۱ كې هم ذكر كړي دده د ايمان او اسلام ذكريې هم كړې دي ، ابن كثير دا ذكر كوي :

**كان يقبل المصحف ويبكى ويقول كلام ربي كلام ربي .**

ده به مصحف ښكلوه او ژړل به يې او ويل به يې :

**كلام ربي كلام ربي .**

**احتج بهذا الامام احمد على جواز تقبيل المصحف ومشروعيته .**

ابن کثیر بیا لیکلي د ده دغه عمل نه امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ دلیل نیولې په دې چې ښکلول د مصحف جائز دي .

خطیب بغدادي په تاریخ بغداد جلد ۴ صفحه ۴۵۶ کې دا روایت ذکر کړي .

علامه هیثمي په مجمع الزوائد جلد ۴ صفحه ۳۰۲ کې ذکر کړي .

بیا وایي : رجاله رجال صحیح .

نو دومره کتبو د عکرمة بن ابي جهل دا عمل ذکر کړي چې د قرآن کریم باندې مخ ایښي دي او په روایت د ابن کثیر کې یې ښکل کړي او ژړلې دي ادباً او صحابه چې کوم عمل وکړي هغې ته بدعت ویل حماقت دي ځکه بدعت هغه عمل ته ویلې شي چې په قرونو ثلاثوو کې اصل ونه لري قرنِ ثاني د صحابوو کې چې موجود وي نو بیا بدعت څنګه شو که د استحباب عقیده دې ورځي فبها که نه ورځي دلیل د جواز خو کیدې شي چې صحابه کوم عمل وکړي .

## المبحث الثاني : في إيراد أقوال الفقهاء من المذاهب الأربعة المعروفة وغيرهم في تقبيل المصحف :

مجمع الانهر في شرح ملتقي الابحر جلد ۸ صفحه ۲۱۴ کې فرمایي :

وكذا لا بأس بقبلة المصحف . باک نشته په ښکلولو د مصحف کې .

لأن ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كان يأخذ المصحف كل غداة و يقبله .

ځکه ابن عمر صاحب به مصحف را اخیسته هر سحر به یې ښکلوه .

ويقول عهد ربي و منشور ربي عز وجل كما في القنية .

نو دلته دې دا ثابتوي چې ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا به دا ښکلوه .

دارنګې :

قال عبد الله بدر الدين محمد بن عبد الله الزركشي الشافعي في البرهان في علوم القرآن جلد ۱ صفحه ۴۷۸ کې فرمایي :

ويستحب تقبيل المصحف . ښکلول د مصحف مستحب دي .

لان عكرمة بن ابي جهل كان يقبلة . عكرمه بن ابي جهل به ښكلوه .

وبالقياس على تقبيل الحجر الاسود . د قياس نه هم لږ كار واخله تقبيل د حجر اسود تعظيماً مسنوناتونه دي نو دادليل خوكيږي چې هريوشي ذي عظمت ښكلول مستحب دي.

ولانه هدية لعباده . هغه د عبادو لپاره هديه من الجنة ده .

فشرع تقبيله . نو جائز شو تقبيل د مصحف .

كما يستحب تقبيل الولد الصغير وعن امام احمد ثلاث رويات (۱) الجواز (۲) والاستحباب (۳) والتوقف .

مقلدين يې دري ډلې شوې جمهور خو يې جائز ګڼي خو امام احمد رَحِمَهُ اللهُ نه توقف راغلې .

ابن حجر عسقلاني په فتح الباري جلد ۵ صفحه ۲۷۳ کې ذکر کوي :

استنبط بعضهم من مشروعية تقبيل الأركان جواز تقبيل كل من يستحق التعظيم من أدمي وغيره فأما تقبيل يد الادمي فيأتي في كتاب الأدب وأما غيره فنقل عن امام أحمد أنه سُئل عن تقبيل منبر النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وتقبيل قبره .

د امام احمد نه چا تپوس وکړو چې د نبي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ منبر ښكلول څنګه دي او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روضه ښكلول څنګه دي .

فلم ير به بأساً . امام احمد رَحِمَهُ اللهُ وايي باک نه لري .

واستبعد بعض اتباعه صحة ذلك . دده بعضې تابعدارانو دې نسبت امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ته بعيد ګڼلې اشاره ابن قيم او ابن تيميه ته کوي .

ونقل عن ابن ابي الصيف اليماني احد علماء مكة من الشافعية جواز تقبيل المصحف واجزاء الحديث وقبور الصالحين .

دارنګې حواشي الشرواني د علامه عارف بالله شيخ عبد الحميد شرواني شافعي جلد ۱ صفحه ۱۵۵ کې فرمايي :

وقال البجيرمي واستدل السبكي على جواز تقبيل المصحف بالقياس على تقبيل الحجر الاسود. امام سبكي وايي چې مصحف ښکلول روا دي دليل داد ی چې حجر اسود باندې دې قياس شي.

ويد العالم والصالح والوالد اذ من المعلوم انه افضل منهم.

په لاس د عالم او صالح او والد باندې دې قياس شي معلومه خبره ده چې حجر اسود نه عالم نه او صالح نه هر چا نه مصحف او قران كريم بهتر دي چې د هغوي تقبيل جائز او مستحب ده تعظيماً نو د قرآن كريم په طريقه اولى تعظيم په كار دي.

دا رنګې صاحب د تحفة المحتاج شرح د منهاج جلد ۲ صفحه ۱۵۷ کې ليکلي دي:

واستدل السبكي على جواز تقبيل المصحف بالقياس على تقبيل الحجر الاسود ويد العالم والصالح والوالد اذ من المعلوم انه افضل منهم.

دا رنګې حاشية الجمل جلد ۹ صفحه ۱۸۱:

قال بعضهم يؤخذ من هنا أي من سن تقبيل الحجر الاسود سن تقبيل المصحف والمنبر الشريف والقبر الشريف أيضاً ومثله قبور بقية الأنبياء والصالحين واجزاء الحديث افتى بذلك ابن ابي الصيف من الشافعية.

دا رنګې وقال صاحب حاشية البجيرمي على الخطيب جلد ۳ صفحه ۳۱۶:

واستدل السبكي على جواز تقبيل المصحف بالقياس على تقبيل الحجر الاسود ويد العالم والصالح والوالد اذ من المعلوم انه افضل منهم.

دا رنګې وقال العلامة شمس الدين ابو عبد الله محمد بن مفلح المقدسي الحنبلي رَحِمَهُ اللهُ في الآداب الشرعية جلد ۲ صفحه ۳۹۱: ويجوز تقبيل المصحف قدمه في الرعاية وغيرها وعنه يستحب لان عكرمة بن ابي جهل كان يفعل ذلك رواه جماعة منهم الدارمي وابو بكر عبد العزيز.

او دده نه منقول دي: التوقف: توقف هم ترې منقول دي.

دا رنګې ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقات شرح د مشكوة کې فرمايي په جلد ۷ صفحه ۷۲:

وقد اطنب ابن حجر هنا بذكر الفروع الفقهية المتعلقة بالقرآن من تحريم توسد المصحف ومستثنياته.

نو ابن حجر صاحب دلته دا مسئله چيړلې چې حرام دي په قرآن كريم تكيه كول بالبنت ترې جوړول عزبو کې دا كيږي.

وتحريم مد الرجل ووضع الشيء فوقه.

حرام دی خپې غزول طرف د قرآن كريم ته دارنګې له پاسه پرې يو شي ايښودل.

دارنګې : واستدبارهٔ وتخطيه ورميه. شاه كول قرآن كريم ته او تخطي كول د قرآن پاک نه خپه اړول او ويشتل د قرآن كريم چې يو كس يې بل ته وراچوي.

دا ټول عربان كوي په قرآن پاک خپه هم اړوي او يو بل ته يې ورغورځوي هم چې قرآن كريم يو د بل نه وغواړي نو هغه يې را واخلي ور وايي چوي دلته وهابيان هم دا كوي.

ما ته يو كس راغې داسې دوه دزې غوندې وه دلته به هم راتلو او د رستمي وهابي سره يې هم ترجمه كوله او زما هم شاګرد وه نو يوه ورځ راغې ماته يې وويل چې زه خو هلته تللي وم او ما پرون عجيبه كار وليد و ماورته وويل هغه څنګه وايي مونږ چې ترجمه كوله نو زر (۱۰۰۰) كسان يو تقريباً څه طالبان دي څه كالجيان دي دې ټولو کې مونږ دوه كسه پټكي (عمامه) لرو وايي مونږ ته بريلويان وايي هرې خوا چې تلل كوو نو آوازونه راپسې كوي چې بريلويان دي وايي دا ټول د ترجمې په وخت کې قرآن پاک په ځمكه ږدي دوي هم ناست وي په ځمكه او قرآن پاک يې هم په ځمكه ايښي وي وايي ما وړوكي بالبنت ځان سره وړي او په هغې قرآن پاک له پاسه ږدم نو وايي راپورې خاندي چې دا څه ليمڅي ځان سره ګرځوي.

نو پرون وايي داسې وشول چې په تفريح کې ما قرآن كريم ايخي وه يو كس وهابي راغې خپه يې پرې واړوله نو وايي ما ونيوه چې قرآن كريم نه دې ولې خپه واړوله نو وايي ماته يې وويل چې ددې څه تعظيم خو په مونږ لازم نه دي دا خو په قصه خواني کې چاپ كيږي د قرآن كريم ادب خو داده چې څه يې درته ويلې وي هغه ومنه دا چاويلي چې خپه به ترې نه اړوي نو دې ځای ته خبره راورسيده.

نو دا تخطي ده دا يې حرام ثابت كړي توسد د مصحف تكيه شوه او مستثنياته يې ثات

کول چې قرآن کریم دوه قطعه کړي بې ځایه او یا یې یوه پاڼه بې ځایه قطع کړي او تحریم د مد الرجل خپه وروغزوي یا برسیره څه شي پرې کیدې یا شاه وروا ړوي تخطي کول یې یو بل ته بې اچول او یا تصغیر د لفظ یې وکوي مصیحف ورته ووایي لکه قرآن ګوتې یاسورة ګوټې .

وجواز تقبیله . دا مسئله یې هم چیړلې .

وکذا ذکر روایة عکرمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

وفي الموسوعة الفقهیة الکویتیة جلد ۴ صفحه ۲۳۵ :تقبیل المصحف ذکر الحنفیة وهو المشهور عند الحنابلة جواز تقبیل المصحف تکریماً له وهو المذهب عند الحنابلة وروي عن أحمد استحبابه لما روي عن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أنه کان یأخذ المصحف کل غداة ویقبله ویقول عهد ربي ومنشور ربي عزوجل .

دا مخکې مونږ ذکر کړي داد عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول نه دي بلکې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دي دا په دې ځای کې دوي نه غلطي شوې ده .

وکان عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یقبل المصحف ویمسحه علی وجهه .

حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به مصحف بنکلولو په مخ به یې مسحه کولو .

وقال النووي في التبیان روینا في مسند الدارمي بإسناد صحیح عن ابن أبي ملیکة أن عکرمة بن أبي جهل کان یضع المصحف علی وجهه ویقول کتاب ربي کتاب ربي ونقل صاحب الدر عن القنیة وقیل إن تقبیل المصحف بدعة .

نو فتاوی کویتیه پرې رد کوي وایي :

ورده بما تقدم نقله عن عمر وعثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا . چې رد یې په دې کې ده د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه ثابت دي نو بدعت څنګه شو .

فتاوی الکبری د ابن تیمیه هم دې ته ترجیح ورکوي چې سلفو نه ثابت نه دي خو قیام دې مصحف ته وشي د قیام قائل دي جلد ۱ صفحه ۱ کې وایي :

فأما إذا اعتاد الناس قیام بعضهم لبعض . که کومو علاقو کې دا رواج وي چې په خپلو

کې یو بل ته پاڅیږي لکه دلته دا رواج دي صلحاء او علماء ته خلک قیام کوي.

**فقد يقال لو تركوا القيام للمصحف مع هذه العادة لم يكونوا محسنين في ذلك ولا محمودين بل هم الى الذم اقرب.**

چې هر کله عالم او صالح ته قیام کوي او قرآن کریم ته قیام نه کوي تعظیمي نو دوي وايي په دې کار کې محسنین نه دي محمودین نه دي بلکې دوي ذم ته اقرب دي.

**حيث يقوم بعضهم لبعض ولا يقومون للمصحف الذي هو احق بالقيام.**

چې خپلو کې یو بل ته قیام کوي نو قرآن کریم ته یې څنګه نه کوي دا احق بالقیام دي.

**حيث يجب من احترامه وتعظيمه ما لا يجب لغيره.**

د قرآن کریم چې څومره احترام لازم دي د بل څیز هغومره لازم نه دي.

**حتى ينهى ان يمس القرآن الا طاهراً والناس يمس بعضهم بعضاً مع الحدث لا سيما وفي ذلك من تعظيم حرمات الله وشعائره ما ليس في غير ذلك وقد ذكر من ذكر من الفقهاء الكبار قيام الناس للمصحف ذكر مقرر له غير منكر له.**

وايي چې څومره فقهاء مونږ ګورو قیام د قرآن کریم تعظیماً ثابتوي رد پرې نه کوي نو ابن تیمیه د قرآن عظیم الشان د قیام تعظیماً قائل دي وهابیان دي مسئله کې خپل مشر پسې هم لانړل او دوي چا دې ته بدعت وویل بیا خلاف اولی ورته وویل چونکې دوي په دې باندې قول کړې وه نو زه مجبوره شومه او دا وړه جزیه مې دلته زیر بحث کړه د څو فقهاء په نصوصو کې د قرآن عظیم الشان پوره احترام کوي او وهابیان مو چې لیدل قصداً یې بنکلوي ځکه دوي د خالق د کلام په تعظیم هم خفه کیږي هسې په خولې چغې د قرآن قرآن وهي په حقیقت کې د قرآن کریم لویه بې آدبي دوي وکړه هم یې د معنی تحریف وکړو او هم یې ظاهري بې عزتي بې حرمتي روانه کړې ده دې نه بعد ما د قاریانو طالبانو خواصو او عوامو لپاره د قرآن کریم حرمات ذکر کړي دا زمونږ دې مسئلې سره یو څه تړاو لري نو وي ګوري چې کوم یو په چا کې کم وي نو کوشش وکړي چې هغه په ځای باندې راوړي.

## ذكر بعض حرمات القرآن :

(۱) ومن حرمته ان يقرأه على طهارة . (۲) ومن حرمته أن يستاك ويتخلل فيطيب فاه.
بل له حرمت د قرآن کريم نه داده چې مسواک به ووهي خوله به ښه پاکه کړي .
اذ هو طريقه . د قرآن کریم د لوستلو لاره دغه ده .
قال يزيد بن أبي مالك : إن أفواهكم طرق من طرق القرآن فطهروها ونظفوها ما استطعتم .

(۳) ومن حرمته ان يتلبس كما يتلبس للدخول على الامير لانه مناج .
بل د احتراماتو د قرآن عظيم نه داده هغه لباس دې آچوي کوم لباس کې چې بادشاه او حاکم ته ورځي ځکه دا مناجات مع الله دي د عامو بادشاهانو نه خالق ته کم کتل نه دي په کار.

(۴) ومن حرمته ان يستقبل القبلة لقراءته .
بل له احتراماتو د قرآن کریم داده مخامخ دې کيني قبلې ته .
وكان أبو العالية إذا قرأ اعتم ولبس وارتدى واستقبل القبلة .
ابو العالية حضرت ابن عباس رضي الله عنه به چې کله تلاوت کولو نو پګړي به يې په سر کړه ښائسته جامې به يې واچولې څادر به يې واغوسته او قبلې ته به مخامخ شو نو دا پټکي په سر کول ښکلې جامې اغوستل څادر اغوستل دا د آدابو د تلاوت نه شول نو چې پټکې په سر کول له آدابو د تلاوت نه شول د جماعت د آدابو نه خو په طريقه اولى سره ده ځکه جماعة کې خو خامخا تلاوت راځي هغه هم حالات د مناجات دي مع الله تعالى .

(۵) ومن حرمته أن يتمضمض كلما تنخع .
بل د آدابو د تلاوت داده کله چې غاړه تازه کوي نو بيا به مضمضه کوي .
روى شعبة عن أبي حمزة عن ابن عباس رضي الله عنهما انه كان يكون بين يديه تور .
يو لوښي به وه د کانړي نه جوړ .
إذا تنخع مضمض ثم اخذ في الذكر او التلاوة .

(۶) ومن حرمته اذا تثائب أن يمسك عن القراءة .
بل د آدابو د تلاوت نه داده چې د اسويلي په وخت کې دې بند شي .

لأنه اذا قرأ فهو مخاطب ربه ومناج والتثاؤب من الشيطان ، وقال مجاهد : اذا تثاءبت وأنت تقرأ القرآن فأمسك عن القرآن تعظيماً حتى يذهب تثاؤبك .

(۷) ومن حرمته ان يستعيذ بالله عند ابتدائه للقراءة من الشيطان الرجيم ويقرأ بسم الله الرحمن الرحيم وان كان ابتدأ قراءته من أول السورة أو من حيث بلغ .

(۸) ومن حرمته إذا أخذ في القراءة لم يقطعها ساعة فساعة بكلام الآدميين من غير ضرورة .

يعنې د معمولي خبرې لپاره دې تلاوت نه بندوي ،

(۹) ومن حرمته أن يخلو بقراءته .

بل د آدابو د قرآن کریم نه دا ده ځان ته دې تلاوت کوي ،

حتى لا يقطع عليه أحد بكلام فيخلطه بجوابه لأنه اذا فعل ذلك زال عنه سلطان الاستعاذة الذي استعاذ في البدء .

وايي که خبرې يې وکړې هغه استعاذه چې سرکې ويلې ده د هغې قوت ختم شو اوس د بلې استعاذې ضرورت دې چې خبرې وکړي بيا به اعوذ بالله وايي چې مدد د خدای تعالی معي شي ورسره ،

(۱۰) ومن حرمته أن يقرأه على تؤدة وترسيل وترتيل .

(۱۱) ومن حرمته أن يستعمل فيه ذهنه وفهمه حتى يعقل ما يخاطب به .

استعمال د ذهن او فهم دې کوي تر دې چې ده ته د څه خطابات شوې په هغې پوه شي ،

(۱۲) ومن حرمته أن يقف على آية الوعد فيرغب الى الله تعالى ويسأله من فضله وأن يقف على آية الوعيد فيستجير بالله منه .

(۱۳) ومن حرمته أن يقف على أمثاله فيتمثلها .

عبرت دې ترې واخلي ،

(۱۴) ومن حرمته ان يلتمس غرائبه .

(۱۵) ومن حرمته اذا انتهت قراءته ان يصدق ربه ويشهد بالبلاغ وكلاهما مروي عن

رسول الله ﷺ فقد روي أبو هريرة عنه أنه قال أعربوا القرآن والتمسوا غرائبه.

(۱٦) ومن حرمته إذ قرأه أن لا يلتقط الآي من كل سورة فيقرأها فإنه روى لنا عن رسول الله ﷺ ألا مَرَّ ببلال وهو يقرأ من كل سورة شيئاً فأمره أن يقرأ السورة كلها أو كما قال عليه الصلاة والسلام.

(۱۷) ومن حرمته اذا وضع المصحف ألّا يتركه منشوراً وألّا يضع فوقه شيئاً من الكتب حتى يكون أبدا عالياً لسائر الكتب علما كان أو غيره.

(۱۸) ومن حرمته أن يضعه في حجره إذا قرأه أو على شيء بين يديه ولا يضعه بالارض.

(۱۹) ومن حرمته أن لا يمحوه من اللوح بالبصاق ولكن يغلسه بالماء.

(۲۰) ومن حرمته اذا غسل بالماء أن يتوق النجاسات من المواضع والماقع التي توطأ فان لتلك الغسالة حرمة وكان من قبلنا من السلف منهم من يستشفي بغسالته.

(۲۱) ومن حرمته ألّا يتخذ الصحيفة إذا بليت ودرست وقاية للكتب فان ذلك جفاء عظيم ولكن يمحوها بالماء.

(۲۲) ومن حرمته ألّا يخلي يوماً من أيامه من النظر في المصحف مرةً وكان أبوموسى يقول إني لأستحي ألّا أنظر كل يوم في عهد ربي مرة.

(۲۳) ومن حرمته ان يعطي عينيه حظهما من العبادة روى زيدا بن اسلم عن عطاء بن يسار عن ابي سعيد الخدري قال قال رسول الله ﷺ: اعطوا أعينكم حظها من العبادة قالوا يا رسول الله ﷺ وما حظها من العبادة؟ قال: النظر في المصحف والتفكر فيه والاعتبار عند عجائبه وروي مكحول عن عبادة بن الصامت قال قال رسول الله ﷺ افضل عبادة امتي قراءة القرآن نظراً.

(۲۴) ومن حرمته أن لا يتأوله عند ما يعرض له شيء من أمر الدنيا.

بل لدا احتراماتو د قرآن كريم داده چې تاويلات د امورو دونيا ويو دې په کې نه کوي او دا فساد نن صبا طالبانو کې شته دي او په ملايانو کې هم شته دي لکه دسترخوان ته به ناست

وي نو وايي :

كلوا واشربوا هنيئاً بما اسلفتم في الايام الخالية . هذا عند حضور الطعام واشباه هذا .

دا تاويل دي بامور الدنيا او يا لكه يو كس ډوډۍ ته ناست دي او بل كس راشي او دا ناست كس دې راغلي كس ته وايي :

جئت على قدر يا موسى . بنه په تيم راورسيدي وايي داتاويل د امورو د دنيا ده دا مدكره .

(۲۵) ومن حرمته ألا يتلى منكوسا كفعل معلمي الصبيان يلتمس احدهم بذلك ان يرى الحذق من نفسه والمهارة فان تلك مخالفة .

(۲٦) ومن حرمته ألَّا يقعر في قراءته .

بل له آدابو د قرآن كريم داده چې په تلاوت كې به ډير ژور نه ځي چې د خپل حد نه بل خوا لاړ شي .

كفعل هؤلاء الهمزيين المبتدعين المتنطعين في إبراز الكلام من تلك الافواه المنتنة تكلفا فان ذلك محدث القاه إليهم الشيطان فقبلوه عنه .

(۲۷) ومن حرمته ألَّا يقرأه بالحان الغناء .

او بل له احتراماتو د قرآن كريم نه داده چې قراءت به نه كوي په لحن د سندرو باندې .

كلحون أهل الفسق .

د اهل فسقو لكه كومې مسابقې د قراءت چې كيږي د ايران او مصر نه چې كوم قاريان راځي او په اوږده ساه قراءت كوي دا خو يو كتاب كې هم نه دي راغلې چې ساه دې اوږده كړه ډير ثواب لري ، او دلته نن صبا چې د چا ساه اوږده وي هغه غټ قاري وي .

ولا بترجيع النصارى ولا نوح الرهبانية فان ذلك كله زيغ وقد تقدم .

نوح الرهبانيه دا چې يو قاري په ژړا تلاوت كړي وي او بل د هغه پيښې كوي هسې ځان ژړه غوني كړي نو دا پيښې په كې ناروا دي .

(۲۸) ومن حرمته أن يجلل تخطيطه اذا خطه وعن أبي حكيمة أنه كان يكتب المصاحف

بالكوفة فمر علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فنظر الى كتابته فقال له اجل قلمك فاخذت القلم فقططته من طرفه قطاً ثم كتبت وعلي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قائم ينظر الى كتابتي فقال هكذا نوره كما نور الله عز وجل .

(۲۹) ومن حرمته ألّا يقرأ في الاسواق ولا في مواطن اللغط واللغو ومجمع السفهاء ألا ترى أن الله تعالى ذكر عباد الرحمن وأثنى عليهم بأنهم إذا مروا باللغو مروا كراماً هذا لمروره بنفسه فكيف اذا مر بالقرآن الكريم تلاوة بين ظهراني اهل اللغو ومجمع السفهاء .

(۳۰) ومن حرمته ألّا يتوسد المصحف ولايعتمد عليه ولا يرمي به الى صاحبه اذا اراد ان يناله.

(۳۱) ومن حرمته ألّا يصغر المصحف .

بل له آدابو د قرآن كريم نه داده چې قرآن كريم به وړوكي كوي نه دا به غټ وي چې څومره غټ وي ښه ده په دې بې آدبي كې دا ټولو مكتبو والا راغله .

روى الاعمش عن ابراهيم عن علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال لايصغر المصحف وروي عن عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انه رأى مصحفاً في يد رجل فقال من كتبه ؟ قال انا فضربه بالدرة وقال عظموا القرآن .

وروى عن رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أنه نهى ان يقال مسيجد او مصيحف .

د تصغير لفظ نه يې منع كړي چې څوک وايي قرآن ګوټې يا مسجد ګوټې .

(۳۲) ومن حرمته ألّا يكتب على الأرض ولا على حائط كما يفعل في المساجد المحدثة.

بل له آدابو د قرآن نه داده چې په ځمكه به يې نه ليكي په ديوال به يې نه ليكي په دا مساجدو كې چې آيت كرسي په ديوال ليكلې شوې وي دا بې آدبي ده دغه شان په قبرونو چې ليكلې شوې دي دا بې آدبي ده كه سپي يا بل حيوان راځي ددې له پاسه بول كوي ګنهګار هغه څوک ده چې چا ليكلې وي .

حدثنا محمد بن علي الشقبقي عن ابيه عن عبدالله بن المبارك عن سفيان عن محمد بن الزبير قال : سمعت عمر بن عبدالعزيز يحدث قال مر رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بكتاب في أرض فقال لشاب من اهل هذيل ما هذا قال من كتاب الله كتبه يهودي فقال لعن الله من فعل هذا لا تضعوا كتاب الله الا موضعه .

(۳۳) ومن حرمته انه اذا اغتسل بكتابته مستشفياً من سقم ألا يصبه على كناسة ولا في موضع النجاسة ولا على موضع يوطأ ولكن ناحية من الأرض في بقعة لايطؤه الناس او يحفر حفيرة في موضع طاهر حتى ينصب من جسده في تلك الحفيرة ثم يكبسها او في نهر كبير يختلط بمائه فيجري.

(۳۴) ومن حرمته أن يفتحه كلما ختمه حتى لا يكون كهيئة المهجور ولذلك كان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا ختم يقرأ من أول القرآن قدر خمس آيات لئلا يكون في هيئة المهجور وروى عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال جاء رجل فقال يا رسول الله اي العمل افضل؟ قال عليك بالحال المرتحل قال وما الحال المرتحل؟ قال صاحب القرآن يضرب من أوله حتى يبلغ آخره ثم يضرب في اوله كلما حل ارتحل.

آخره کې بیا علامه قرطبي رَحِمَهُ اللَّهُ دا ذکر کوي دا مخکې عبارتونه اکثره د قرطبي دي.

قلت ويستحب له اذا ختم القرآن ان يجمع أهله.

چې ختم کوي نو اهل به راغونډوي.

واخبرنا ادريس حدثنا جرير عن منصور عن الحكم قال كان مجاهد وعبدة بن لبابة وقوم يعرضون المصاحف فاذا ارادوا ان يختموا وجهوا الينا.

چې کله به يې ختم کوه مونږ ته به يې څوک راوليږل.

احضرونا. چې راځئ را حاضر شئ مونږ سره راجمع شي.

فان الرحمة تنزل عند ختم القرآن.

ختم القرآن کې رحمت نازليږي نو د قرآن کريم په ختم راغونډيدل اجتماع کول داد مندوباتو نه دي د احترام د کلام شريف نه دي.

دلته پاکستان کې چې کوم ماشوم قرآن کريم خلاص کړي نو خلک را جمع کوي ختم جوړوي نو دا د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه هم مروي دي او نورو صحابه کرامو نه هم دا مروي دي.

ختم شود

